فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لاتعلمون
(ترجمه) کچرته تاسونه پوهیږئ نود ارباب علم نه پښتنه وکړئ

# په تندي د تور ټاپې تحقيق



ازافادات

شیخ القرآن والحدیث نابغه عصر حاضر
غلام حضرت غلام دامت برکاتهم

مرتب ومترجم

الفقیر سید محمد آیاز علی شاہ السیفی عُفی عنه
بالنبی صلی اللہ تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم

پته

**کوهاٹ روڈ بهادر کلے محله ابراهیم خیل**

مدرسه جامعه محمدیه مجددیه سیفیّه ملحقه بتنظیم المدارس
اهلسنت پاکستان

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَ السَّلَامُ عَلٰى اَفْضَلِ الْاَنْبِيَاءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

امابعد وائی خادم د حدیثو شریفو په جامعه دارالاحناف پښاور پاکستان غلام حضرت غلام الحنفی ما دبعضی خواصو او عوامو نه واوریدل په باره د هغی توری تاپی کښی کمه چی د بعضی باطل پرستو ریاکارانو په تندو کښی پیدا شویدی چه دا هغه نخه ده کمه چی الله تعالیٰ جل شانه د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم باره کښی پدی قول خپل کښی ذکر کړیده.

سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ سورة الفتح/پاره 26/آیت 29.

(ترجمه) د دوی مخونو کښی به د سجدی داثر نخه وی.

نو زه حیران شم د دی تحریف باره کښی او بیا می د دغی نخی باره کښی په احادیث مبارکه او د مفسرینو رحمهم الله تعالیٰ په اقوالو کښی تلاش شروع کړو نو ما د دغی نخی تفسیر ولیدو چی مراد د دغی نخی نه د قیامت په ورځ د مخ رڼرا ده. او یا په دنیا کښی یوه ښه نخه او اثر د عاجزی دے اویا د اودس لوندوالے او اثر د زمکی دے په ټندی کښی (یعنی څوك چی په لوند تندی سجده اُلګوی خاوره پری انخلی نو دغه خاوره مراد ده).

او یا زیړوالے دمخ مراد دے او یا د شپی رُوڼرول مراد دی او سوا د زمحشری نه (چی: معتزلو امام دے) ما یو مفسر پیدا نکړو چی هغه د دغی نخی نه د تندی توره تاپه مراد کړی وی بلکه زمحشری اوّل هغه څوك دے چی ددغی نخی معنیٰ یې په توری تاپی سره کړیده حالانکه زمحشری صرف د نحواو د معانی امام یا دولے شی او چا هم ده ته امام د تفسیر ندی ونیلی.

Scanned by CamScanner

فلهذا چی کم غیر مجتهدینو مفسرینو ددغی نخی معنیٰ په توری تاپی
سره کړیده هغی د زمخشری اتباع کړیده. (وَاَمْرُهُمْ اِلَی الله)
زه دا مسئله پنځو مباحثو ته تقسیموم.
اوّل مبحث په تفسیر او معنیٰ د دغی نخی کښی د مرفوع احادیثونه.
دویم مبحث په تفسیر د دغی نخی کښی د موقوف روایاتونه.
دریم مبحث په تفسیر ددغی نخی کښی د تابعینو او دتبع تابعینو رحمهم الله د اقوالونه.
څلورم مبحث په رد د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم او تابعینوّ او مفسرینوّ په دغه توری تاپی.
پنځم مبحث په ذکر د خوار جو او د تورو تاپو د هغی کښی.
اوّل مبحث: په تفسیر د دغی نخی کښی د مرفوع احادیثو مبارکونه.
۱. عَنْ اُبَیِّ بْنِ کَعْبٍ رضی الله تعالیٰ عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ الله صلی الله تعالیٰ علیه وعلیٰ اله وسلم (سِيْمَا هُمْ فِي وُجُوْهِهِمْ مِنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ) قَالَ النُّوْرُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.
المعجم الاوسط للطبرانی ج 10/ص173/رقم الحدیث 4619
المعجم الصّغیر للطبرانی ج1/ص236/رقم الحدیث 610
مجمع الزوائد ج 7/ص10/رقم 11347
تفسیر روح المعانی ج19/ص 237
تفسیر فتح القدیر ج 7/ص 7
تفسیر الدر المنثور ج 9/ص235
(ترجمه) د حضرت اُبی بن کعب رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے چی حضرت رسول اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارک :ه

(سِيْمَاهُمْ فِي وُجُوْهِهِمْ) په تفسير او معنیٰ کښی اُفرمائيل چی دا به يوه رڼرا وی د قيامت په ورځ (په مخونو د دوی کښی يعنی په دنيا کښی د تندی نور تاکے مراد ندی)

۲. عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ وَاَبِی الدَّرْدَاءِ رضی الله تعالیٰ عنهما قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم اَنَا اَوَّلُ مَنْ يُّؤْذَنُ لَهٗ فِي السُّجُوْدِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ اَوَّلُ مَنْ يُّؤْذَنُ لَهٗ اَنْ يَّرْفَعَ رَأْسَهٗ فَاَرْفَعُ رَأْسِیْ فَاَنْظُرُ بَيْنَ يَدَیَّ فَاَعْرِفُ اُمَّتِیْ مِنْ بَيْنِ الْاُمَمِ وَاَنْظُرُ عَنْ يَّمِيْنِیْ فَاَعْرِفُ اُمَّتِیْ مِنْ بَيْنِ الْاُمَمِ وَاَنْظُرُ عَنْ شِمَالِیْ فَاَعْرِفُ اُمَّتِیْ مِنْ بَيْنِ الْاُمَمِ فَقَالَ رَجُلٌ يَارَسُوْلَ اللهِ صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم وَكَيْفَ تَعْرِفُ اُمَّتَكَ مِنْ بَيْنِ الْاُمَمِ مَابَيْنَ نُوْحٍ اِلٰی اُمَّتِكَ؟ قَالَ غُرٌّ مُحَجَّلُوْنَ مِنْ اَثَرِ الْوُضُوْءِ وَلَا يَكُوْنُ لِاَحَدٍ مِنَ الْاُمَمِ غَيْرِهِمْ وَاَعْرِفُهُمْ اَنَّهُمْ يُؤْتَوْنَ كُتُبَهُمْ بِاَيْمَانِهِمْ وَاَعْرِفُهُمْ بِسِيْمَاهُمْ فِي وُجُوْهِهِمْ مِنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ وَاَعْرِفُهُمْ بِنُوْرِهِمُ الَّذِیْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَعَنْ اَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَائِلِهِمْ.

المستدرك ج 2/ص 520/رقم 3784 و مجمع الزوائد ج 11/ص273/رقم 18361 .

(ترجمه) د حضرت ابوذر غفاری او د حضرت ابودرداء رضی الله تعالیٰ عنهما نه روايت دے. چی حضرت رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك فرمائيلی دی زه اول هغه شخصيت يم چی (د سجدی نه) د خپل سر داوچتولو حکم به ورته کولے شی پس زه به خپل سر اوچت کړم او مخکښی به وګورم نو زه به تمام امتونو کښی خپل امت پيژنم اوزه به ښی طرف ته وګورم نو تمام امتونو کښی به خپل امت پيژنم اوزه به ګس طرف ته وګورم نو تمام امتونو کښی به خپل امت پيژنم پس يو صحابی

رضی الله تعالیٰ عنه پښتنه وکړه یا رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه واله وسلم د حضرت نوح علیه السلام نه ستاسو امت پوری خو ډیر امتونه تیر شویدی تاسو به د دوی درمیان کښی خپل امت څنګه پیژنی؟

حضرت رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك جواب کښی ورته وفرمائیل د اودس د اثر دوجی نه ( د دوی داودس اندامونه به) تك سپین رنړا کونکی وی او دا (اعزاز) به د یو امت هم نه وی او زه به خپل امتیان پدی پیژنم چی دوی له به عملنامی په ښی لاسونو ورکولے شی او زه به خپل امتیان د دوی د سجدو په نخو پیژنم چی مخونو کښی به ی وی اوزه به خپل امتیان پدی پیژنم چی دهغی مخکښی اوښی اوګس طرف ته به رنړا ګانی وی.

(نوټ) معلومه شوه چی د (سِيْمَاهُمْ فِي وُجُوْهِهِمْ) نه مراد د قیامت دورځی رنړا ده او افسوس صدافسوس چی نن تری خلق د تندو توری تاپی مراد کړی فَاِلَی اللهِ الْمُشْتکیٰ

دویم مبحث په تفسیر د دغی نخی کښی د موقوف روایاتونه

١. عَنِ ابْنِ عباس رضی الله تعالیٰ عنهما فی قوله تعالیٰ (سِيْمَاهُمْ فِي وُجُوْهِهِمْ) بَيَاضٌ يَغْشٰى وُجُوْهَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

التاریخ الکبیر للبخاری ج 3/ص21/ رقم 83

مختصر قیام الیل للمروزی ج 1/ص25/الکنی والاسماء للدولابی ج5/ ص456/رقم 1333

تفسیر روح المعانی ج 19/ص237

تفسیر فتح القدیر للشوکانی ج 7/ص7/تفسیر الدرالمنثور ج9/ص235

(ترجمه) د دغی نخی نه مراد سپینوالے دے چی د قیامت په ورځ به ئ د دوی مخونه پټ کړی وی.

(نوټ) معلومه شوه چی دنیاوی توری تاپی مراد ندی بلکه د روز قیامت سپینوالے مراد دے. د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما نه چند نور تفاسیر هم منقول دی چی مراد ددغی نخی نه صَلَاتُهُمْ تَبْدُوْ فِى وُجُوْهِهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (مونځونه به ئ رابښکاره شی د قیامت په ورځ په مخونو کښی) الدرالمنثور ج 9/ص237/ زادالمسير لابن الجوزی ايضاً 5/ص394.

اويل روايت کښی فرمائی اَلسَّمْتُ الْحَسَنُ (ښائسته نخه مراد ده) سنن کبرٰی للبيهقی ج2/ص286/رقم 3370

اَلسَّمْتُ الْحَسَنُ وَالْخُشُوْعُ وَالتَّوَاضُعُ وَهُوَ رِوَايَةُ الْوَالِبِى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضى الله تعالىٰ عنهما: قَالَ لَيْسَ بِالَّذِىْ تَرَوْنَ لٰكِنَّهُ سِيْمَاءُ الْاِسْلَامِ وَسَجِيَّتُهُ وَسَمْتُهُ وَخُشُوْعُهُ.

تفسير الطبرى ج 22/ص264 تفسير ابن کثير ج 7/ص 361

زاد المسير ج 5/ص394/ فتح القدير ج 7/ص7

تفسير البحر المحيط ج 10/ص99 تفسير اللباب لابن عادل ج 14/ص294 الدرالمنثور ج9/ص235/تفسير الخازن ج5/ص454

تفسير الثعالبی ج 3/ص466 المحرر الرجيز ج 6/ص162 تفسير ابن ابی حاتمؒ ج12/ص233.

(ترجمه) مراد ددغی نخی نه ښکلی نخه (سپینوالے د مخ) او عاجزی ده او هم دا روايت امام والبیؒ د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما نه کړيدے چی ددينه مراد: هغه توره تاپه نده کمه چی تاسو (د خلقو

تندو کښې ګورې) بلکه دینه مراد د اسلام نخه او طبعیت او عاجزي ده.
دریم مبحث په تفسیر ددغې نخې کښې د تابعینو او تبع تابعینو رحمهم الله تعالیٰ داقولونه.

١. د حضرت مجاهد تابعي رحمه الله تفسیر.

عَنْ مُجَاهِدٍ (سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ) قَالَ بَيَاضُ وُجُوهِهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِكَثْرَةِ سُجُودِهِمْ كَانَ فِي الدُّنْيَا. الزهد لأحمد بن حنبل ج5/ص154/رقم 2098

(ترجمه) دغې نخې نه مراد په ورځ د قیامت د دوی د مخونو سپینوالے دے د دنیاوي د ډیر مونځونو دوجې.

(نوټ) معلومه شوه چې د که خلقو تندو کښې تور ټاکے دے دا قرآن او سنت نه څوك هم نشي ثابتولے بلکه قرآن او سنت کښې د دغې تورې ټاپې مذمت ذکر دے او صحابه کرامو رضي الله تعالیٰ عنهم او تابعینو رحمهم الله هم پدغه تورې ټاپې ردونه کړي چنانچه امام مجاهد جليل القدر تابعي دے د دوی مبارك نه دویم روایت د مذکوره ( سِیْمَا) په تفسیر کښې داسې نقل دے. عَنْ مَنْصُوْرٍ قَالَ: قُلْتُ لمجاهد (سيما هم في وجوههم من اثر السجود) اهو أَثَرُالسجود في وجه الانسان فقال لا ان احد هم يكون بين عينيه مثل ركبة العنز وهو كما شاء الله من الشر لكنّهُ الخشوع.

سُنن البيهقي الكبرٰى ج 2/ص287/رقم 3375 معاني القرآن للنحاس ج6/ص514 تفسير الشورى ج 1/ص278 تفسير روح المعاني ج 26/ص125 تفسير القرطبي ج 16/ص248 فتح القدير ج 5/ص79.

(ترجمه) حضرت منصورؒ فرمائي چې ما د حضرت مجاهد رحمه الله تعالیٰ نه پښتنه وکړه چه (سيما هم في وجوههم من اثر السجود) کښې ددې

نخی نه مراد په تندی او مخ کښې توره تاپه ده نو هغه مبارك افرمائیل چه
: کم کس په تندی کښې د اُبِی د زنګون پشان تاپه لګیدلی وی نو هغه
کښې خو چی د خدائے څومره ښوښه وی شراو فساد وی بلکه دغې نخی
نه مراد عاجزی ده.

۲. : حضرت حسن بصری تابعی رحمه الله تفسیر

قال علیُّ بنُ المُبارك: سمعتُ غیرَ واحدٍ عن الحسن فی قوله تعالی (سیماهُم فی وُجُوهِهِم من اثر السجود) قال بیاضًا فی وُجُوهِهِم یومَ القیامة وفی روایة عنه الغُرة الخ

تفسیر الطبری ج26/ ص263 زاد المسیر ج 5 ص394

(ترجمه) حضرت علی بن المبارك فرمائی چه ما د ډیرو ارباب علم نه اوریدلی دی چی د حضرت حسن رحمه الله نه ئې د دی آیت کریمه (سیما هم فی وجوههم الخ) تفسیر داسی نقل کولو چی دا د قیامت په ورځ د مخ سپینوالے دے او بل روایت کښې ذکر دی چی زیړوالے تری مراد دے (توره تاپه مراد نده).

۳. : حضرت مام مقاتل رحمه الله تفسیر

عن المُقاتِل بن حیّان قال (سیماهُم فی وُجُوهِهِم مِن اکثرِ السجود) قال النُّورُ یومَ القیامة وفی روایة بیاضٌ فی وُجُوهِهِم یومَ القیامة.

تفسیر الطبری ج 22/ص262 الزهد لابی حاتم الرازی ج 1/ص75/رقم 74

(ترجمه) : حضرت مقاتل بن حیان نه روایت دے چی : (سیما هم فی وجوههم الخ) نه مراد د قیامت دورځی نور دے او بل روایت کښې فرمائی چی : قیامت دورځی د مخونو سپینوالے : دوی مراد دے.

۴. د حضرت عطية العوفي رحمه الله تفسير

عَنْ عَطِيَّةَ فِي قَوْلِهِ (سِيْمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ) قَالَ مَوَاضِعُ السُّجُوْدِ مِنْ وُجُوهِهِمْ يوم القيامة اشدو جُوهِهِمْ بياضا.

تفسير الطبري ج 22/ص262

(ترجمه) د حضرت عطية رحمه الله د (سيما هم في وجوههم) الاية په تفسير كښي فرمائيلي ددي چي د سجدي ځايونه (اندامونه) د دوى به (او خصوصاً مخونه د دوى به) د هر چا د مخونو نه به زيات سپين وي.

۵. د حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله تفسير

قَالَ عَطَاءُ بْنُ ابى رباح: إِسْتَنَارَتْ وُجوههم مِنْ كثرة ماصَلُّوْا

تفسير البغوى ج 7/ص324 تفسير النسفي 3 ص338 تفسير النيسابوري ج7 ص35 الكشاف ج 6/ص361 تفسير الخطيب الشربيني ج 1 ص4202

(ترجمه) حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله د مذكوره آيت كريمه په تفسير كښي فرمائي چي رڼا بكوى مخونه د دوى دوجي د ډير مونځونو نه.

(نوټ) نن د خلقو مخونو كښي تياره وي او بيا د دي آيت كريمه استدلال كوني چي دينه مراد د تندو تور تاكي دي (لاحَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بالله)

٦. د حضرت ربيع بن انس رحمه الله تفسير

وَ قَالَ عطاء بْن ابى رباح والربيع بن انس رحمهما الله تعالى اسْتَنَارَتْ وُجُوْهُهُمْ مِن كثرة ماصلوا.

الكشف والبيان لثعلبي ج 12/ص 242

(ترجمه) حضرت عطاء بن ابى رباح او حضرت ربيع بن انس رحمهماالله د

مذکوره نخې په تفسیر کښې فرمائي. چې رنړا بکوی مخونه د دوی دډیرمونځونو دوجې نه.

۷. د حضرت سفیان ثوری رحمه الله تفسیر

وقال سفیان وعطاء استنارت وجوههم من طول ما صلوا باللیل لقوله علیه السلام (من کثرت صلوته باللیل حسن وجهه بالنهار) البحر المدید ج 6/ص98

(ترجمه) حضرت سفیان ثوری او عطاء رحمهما الله فرمائي چې رنړا بکوی مخونه د دوی دوجې د شپې د اوږدو مونځونو نه ځکه چې پیغمبر علیه الصلوٰة والسلام مبارك فرمائیلي دي څوك چې د شپې مونځونه ډیر کوني (تهجد مراد دی) نو دورځې به ئې مخ ښائسته وي.

(نوټ) د ښندی د توری تاپې سره مخ نه ښائسته کیږي بلکه هغې سره خو په سرمرېږي.

۸. د حضرت سعید بن جبیر رحمه الله تفسیر

وقال ابن جبیر في وجوههم یوم القیمة یعرفون بها انهم سجدوا في الدنیا لله تعالی وفي روایة عنه ثری الارض وندی الطهور.

البحر المدید ج 6/ص98 سنن البیهقي ج 2/ص411/رقم 3703 تفسیر الطبري ج 22 ص264 الدرالمنثور ج9/ص236

(ترجمه) حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمائي چې د مذکوره آیت کریمه مطلب دادے چې د قیامت په ورځ به دوی په (سپین) مخونو پیژندلے شي چې دوی په دنیا کښې الله تعالیٰ ته سجدې کړی وی او بل روایت کښې فرمائي چې دینه مراد د خاورے اثر دے او یا د اودس د اُبو لوندوالے دے ( چې کله مونځ کونکے په لوند مخ سجده الګوی نو په مخ

ې خاوره انخلي بس هم دغه خاوره مراد ده تور والے د تندي مراد ندے)

٩. د حضرت شهربن حوشب رحمه الله تفسير

وَقَالَ شهر بن حوشب: تكونُ مواضع السجود من وجوههم كالقمرليلة البدر.

تفسير البغوى ج 7/ص324

(ترجمه) حضرت شهر بن حوشب رحمه الله د مذكوره آيت كريمه په تفسير كښې فرمائي چه د سجدې اندامونه به ې د قيامت په ورځ د څوارلسمې د سپوږمې پشان ځليږي (معلومه شوه د تندې توره تاپه مراد نده)

١٠. د حضرت ضحاك رحمه الله تفسير

واخرج ابن نصر وابن المنذر عن الضحاك في الاية قال هُوالسَّهَرُ اذا سهر الرجل من اَلّيل اَصْبَحَ مُصْفَرًّا.

الدرالمنشور ج 9/ص236

(ترجمه) حضرت ضحاك رحمه الله د مذكوره آيت مباركه په تفسير كښې فرمائي چې دينه مراد دمخ زيړوالے دے څكه چې كله يو سړے شپه رونړه كړي نو دورځې ې مخ زيړ دي.

١١. د حضرت عكرمة رحمه الله تفسير

واخرج بن أبي شيبة وابن نصرعن عكرمة رحمه الله (سيماهم في وجوههم) قال السهر وفي رواية عنه هو اثر التراب.

الدرالمنشور ج 9/ص236 تفسير الطبرى ج 22/ص264

(ترجمه) حضرت عكرمه رحمه الله د مذكوره آيت كريمه په تفسير كښې فرمائي چې دينه مراد د شپې رونړول دي (يعنې د شپې د رونړولو اثار دي) او [illegible] روايت كښې فرمائي چه: خاورې اثر ترې مراد دے

( چی په لوند تندی څوك سجده الګوی نو په تندی خاوره انخلی فلهذا هغه مراد ده د تندی توره تاپه مراد نده)

۱۲. د حضت سعید بن المسیب رحمه الله قول.

وعن سعید بن المسیب هی ندی الطهور وتراب الارض

تفسیر النیسابوری ج 7/ص35 الکشاف ج 6/ص361

(ترجمه) حضرت سعید بن مسیب رحمه الله فرمائی دینه مراد داودس د اُبو لوندوالے او اثر د خاورے ددے.

(نوټ) د حضرت سعید بن المسیب رحمه الله د تاویل تائید د مرفوع روایت نه عن واثله بن الأسقع قال: قال رسول الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم لا یمسح الرجلُ جبهته حتّی یفرغ من صلاته ولا بأس ان یمسح العرق عن صدغیه فان الملائکة تُصلّی علیه ما دام اثر السجود بین عینیه.

(ترجمه) د حضت واثلة بن الاسقع رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے چی حضرت رسول الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم مبارك فرمائیلی دی چی مونځ کونکے سړے به د مانځه د فراغت نه مخکښی خپل تندے (د خاوری نه) نه پاکوی او که د سونړه کو نه خوله پاکوئی نو په هغی کښی باك نشته ځکه چی تر څو د مونځ کونکی د دوو ۲ سترګو مینځ کښی د سجدی اثر پروت وی (یعنی تندی کښی خاوره وی) ملائك کرام ورته استغفار غواړی.

آمدم بر سر مطلب: پس د مجموعه اقوالونه معلومه شوه چی د مذکوره (سیما) (نخی) نه مراد یا خو په آخرت کښی نور دے او یاد اودس د اندامونو سپینوالے او روشنائی ده او یا په دنیا کښی د سجدی دوجی اثار

دعا جزی او زیروالے د مخ دے یا اثر د خاورے دے. او سوا د زمخشری نه بو شخص هم د مفسرینو رحمهم الله نه نشته چی هغه دددغه (سیما) تفسیر په تاپی سره کړے وی بلکه پدی خبری چی اوّل خُله کهلاؤ کړیده نو هغه زمخشری معتزلی دی او بیا بعضی متاخرینو مفسرینو چه غیر مجتهدین دی زمخشری پدی خبره کښی خپل امام گرځولے دے.

شلورم مبحث: په رد د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم او د تابعینو او د مفسرینو په دغه توری تاپی چه تکلفا جوړه شویده.

۱. د حضرت سیدنا عمر فاروق رضی الله تعالیٰ عنه رد په توری تاپی.

عن أبی الشعثاء قال: قال عبدالله حبیب یری انّه ابن عمر قال: قال عمر رضوانُ الله علیه لِرَجُلٍ قداثر السجود بانفه لا تَغلَبْ صُوْرَتَكَ.

تهذیب الآثار للطبری ج 5/ص339/رقم 2204

(ترجمه) د حضرت ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما نه روایت دے چی حضرت عمر رضی الله تعالیٰ عنه هغه سړی ته وفرمائیل د کم سړی پوزه کښی چی توره تاپه پیدا شوی وه مه عیب ژن کوه خپل صورت (لوبی او نخری ورسره مکوه).

(نوټ) معلومه شوه چی نن کم ریاکان په زمکو باندی خپل تندی ددغی تاپی دپاره سُلوی نو دا خپل مخونه عیب ژن کویٔ.

۲. د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما په توری تاپی رد.

عن مجاهد عن ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهم فی قوله (سیما هم فی وجوههم من اثرالسجود) قال: أمَا إنه لیس بالذی ترون ولکنّه سیما الاسلام وسَحْنَتُه وسمته

۱

تفسیر الطبری ج 22/ص 264

تفسیر البغوی ج 7/ص 324 زاد المسیر ج 5/ص394 تفسیر الخازن ج 5/ص454 الکشف والبیان للثعبلی ج 12/ص 243

(ترجمه) حضرت عبدا بن عباس رضی الله عنهما د مذکوره آیت کریمه په تفسیر کښې فرمائي چې دینه مراد هغه توره تاپه نده کمه چې تاسوې (د خوارجو) په تندو کښې گوری بلکه دینه مراد اسلامی نخی او د څرمنی نرموالے او عاجزی ده.

(نوټ) حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما مبارك ته درئیس المفسرین او ترجمان القرآن لقب ملاؤشوید ے هغه مبارك هم د تندی په توری تاپې رد کوئي لیکن افسوس چې نن پری خوارج فخر کوئ.

۳. د حضرت سیدنا ابو الدرداء رضی الله تعالیٰ عنه په توری تاپې رد.

عن ابی الدرداء رضی الله تعالیٰ عنه انّه رَای امرَاۃً بین عَینیهَا مِثلُ ثَفنَةِ الشّاۃِ فقال اما انّ هذالولم یکن بین عَینَیكِ کانَ خیرًا لَكِ.

سنن البهیقی الکبری ج 2/ص 286/ رقم 3373 مصنف ابن ابی شیبة ج1/ ص 273 / رقم 3138

(ترجمه) حضرت ابو الدرداء رضی الله تعالیٰ عنه یوه زنانه ولیده چې د هغې په تندی کښې د گډ دزنگون پشان تاپه لگیدلی وه ابودرداء رضی الله تعالیٰ عنه وفرمائیل خبردار کچرته ستا تندی کښې دا توره تاپه نه وے دابه دیره بهتره وے تاله.

(نوټ) د حضرت ابودرداء رضی الله تعالیٰ عنه نه دویم روایت هم داشان منقول دے.

ابو الدرداء رضي الله تعالیٰ عنه رای رجلاً بَيْنَ عينيه مثلُ ثفنة البعير فقال لولم يكن هذا كان خير شبه السجادة بين عينيه باحدی ثفنات البعير وهي ما يلي الارض من اعضائه عند البروك فيغلظ الفائق في غريب الحديث والأثر ج1/ص54

غريب الحديث لابي عُبيد ج 4/ص152

غريب الحديث لابن سلام ج 4/ص 152

نظم الدرد للبقاعي ج 8/ص143

نظم الدرد للبقاعي ج 8/ص143

تفسير السراج المنير ج 1/ص4202

(ترجمه) حضرت ابو درداء رضي الله تعالیٰ عنه يو سړے وليدو چې د هغه تندی کښې د اُبن د زنګون بشان توره تاپه وه حضرت ابودرداء رضي الله تعالیٰ عنه وفرمائيل کچرته دا توره تاپه نه وے دا به ډیره بهتره وه.

حضرت ابودرداء رضي الله تعالیٰ عنه د تندی توره تاپه د اُبن د هغه زنګون سره مشابه کړه چه اُبن ې د ناستی په وخت کښې په زمکه لږوی او بیا هغه سخته شی او تور والے پری حاوی شی.

(نوټ) نن هم مونږ ډیر ریاکاران او خوارج ګورو چې د اُبن د زنګون بشان تاپې ې تندی کښې جوړې کړې وی او خلقو ته وائی چه دا جنتی محراب دے. (عیاذًا بالله سُبحانه وتعالیٰ)

۴. د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله تعالیٰ عنهما رد په توری تاپې.

عن سالم ابی النضر قال جاء رجلٌ الی بن عمر رضي الله تعالی عنهما فسلم عليه قال من انت قال انا حاضِنُكَ فلانٌ ورَأی بينَ عينيه سجدةً سوداء فقال ماهذا الأثر بين عينيك فقد صحبتُ رسول الله صلی الله تعالی عليه وعلی اله وسلم وابابكر وعمر و

عثمان رضی الله تعالی عنهم فهل تری هاهنا من شی ؟

سنن البیهقی الکبری ج 2/ص286/ رقم 3371 ایضاً ج 2/ص406 رقم 3698 ایضاً ج2/ص 286.

(ترجمه) حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما له یو شخص راغے حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما پښتنه وکړه چه نه خوك بی هغه سړی اوونیل زه تاسو فلانکے خدمت کونکے او پالونکے یم چه معصوم والی کښی به ما ستا خدمت کولو. حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما د دغه سړی په تندی کښی توره تاپه ولیده نو تپوس ې وکړو چی ستا د سترګو مینځ کښی د نخه (توره تاپه) د څه خبری ده (که نه وانی چه زه مونځونه ډیر کوم نو) یقیناً ما د حضرت رسول اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك سره صحبت کړیدے د حضرت ابوبکر صدیق او عمر فاروق او عثمان غنی رضی الله تعالی عنهم سره می صحبتونه کړی دی نه وګوره زما په تندی کښی څه توروالے وینی (تعجب دے او بیا انکار دے ستا په حالت چی تندے دی ځان له خراب کړیدے).

(نوټ) حضرت سیدنا عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما یو جلیل القدر صحابی دے او هغه مبارك هم د دی توری تاپی سخت مخالف وو لیکن افسوس دے نن ورته د سپینی جامی ډاکوان جنتی محراب وائی تعجب خو دا دے چه دا جنتی محراب د یو لاکه خلیریشت زره پیغمبرانو علیهم السلام کښی د یو پیغمبر علیه السلام تندی کښی نه وو او نه د کم صحابی" او تابعی" په تندی کښی وو او نن د دی بدبختانو به تندو کښی

را پیدا شویدی او دوی ډیری فخر کوی حالانکه ځانته ئ نول مخ خراب کړے وی وګوری د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما نور اقوال.

١. عن حبيب بن ابي ثابت قال سمعت ابا الشعثاء قال قال فلانٌ اراه بن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما لرَجُلٍ لا تعلب صُورتك.

مسند ابن الجعد ج1/ص95/رقم 550

(ترجمه) حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما ( د یو سړی تندی کښی توره تاپه ولیده نو) هغه ته ئ وفرمائیل چه مه عیب زن کوه خپل مخ (ځکه چی تندی کښی توری تاپی سره مخ عیب زن کیږی).

٢. عن اشعث بن ابي الشعثاء عن ابيه عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما ان رای اثرا فقال يا عبدالله ان صُورة الرجل وجهه فلاتشين صُورتك.

سُنن الکبری للبیهقی ج 2/ص286 /رقم 3372 المصنف لابن ابی شیبه ج1/ص273/رقم 3137.

(ترجمه) حضرت ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما د یو سړی تندی کښی توره تاپه ولیده نو هغه ته ئ وفرمائیل د خدائے بنده: سړی صورت او ځانست خو مخ دے دا خپل مخ (پدی توری تاپی سره) مه داغ زن کوه.

٥. د حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه په دغه توری تاپی رد: عن الجعيدبن عبدالرحمن قال كنت عند السائب بن يزيد.

إذ جاءه الزبير بن سهيل بن عبدالرحمن بن عوف وفي وجهه اثر السجود فلمارآه قال من هذا: قيل الزبير قال لقد افسد هذا وجهه اما والله ما هي السيما التي سماها الله ولقد صليت على وجهي لثمانين سنة ما اثر السجود بين عيني المعجم

الکبیر ج7/ص158/ رقم /6686 مجمع الزوائد ج 7/ص 11/رقم 11348 الآحاد والمثانی لابن ابی عاصم ج 7/ص12/رقم 2142 الدر المنثور ج7/ص542/ تفسیر روح المعانی ج 19/ص236 اتحاف الخیرة المهرة بزوائد المسانید العشرة ج1/ص66.

(ترجمه) حضرت جعید بن عبدالرحمن فرمائی چه زه د حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه سره ناست ووم چی اچانك دده صحبت له زبیر بن سهل بن عبدالرحمن بن عوف راغے او د هغه تندی کښی توره تاپه وه. نو هر کله چی حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه دغه تاپه اولیده وی فرمائیل دا سړے خوك دے (چی تندی کښی څانته تاپه جوړه کړی ده) چا ورته اووئیل چه دا زُبیر دے حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه وفرمائیل چی ده خوځان له تول مخ (دی تاپی سره) برباد کړیدے قسم دے دا هغه نخه نده کمه چی الله تعالیٰ د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم صفت کښی ذکر کړیده څکه چی ما خو پدی خپل تندی اتیا (80) کاله سجدی لګولی دی خو دغو سجدو زما تندی کښی داتوره تاپه نده پیدا کړی.

د حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه دویم روایت.

عن حمید هو بن عبدالرحمن قال کنا عند السائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه اذ جاءه الزبیر بن سهل بن عبدالرحمن بن عوف فقال لقدافسد وجهه والله ما هی سیماء و الله لقد صلیت علی وجهی مُذکذا و کذا ما اثر السجود فی وجهی شیئاً

السنن الکبریٰ للبیهقی ج2/ص 287/رقم/3374.

(ترجمه) حضرت حمید بن عبدالرحمن فرمائی چه مونږ د حضرت سائب

بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه سره ناست وو اچانك د ده محفل ته زبیربن سهل بن عبدالرحمن بن عوف راغے (او د هغه تندی کښی توره تابه وه) نو حضرت سائب بن یزید رضی الله تعالیٰ عنه وفرمایل چه دی سړی خان له (بدی تابی سره) تول مخ خراب کړیدے والله که دا هغه نخه ده کمه چې الله تعالیٰ قرآن کریم کښی ذکر کړیده والله چې زما دومره دومره وخت اُشو چې دامخ سجده کښی په زمکه لګوم خو دغې ډیره سجدو زما مخ کښی هیڅ داغ پیدا نکړو.

٦. د حضرت انس بن مالك رضی الله تعالیٰ عنه په دغه توری تابی باندی رد کول.

عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه انه قال اِنِّیْ لَاُبْغِضُ الرَّجُلَ وَاَکْرَهُهٗ اِذَا رَاَیْتُ بَیْنَ عَیْنَیْهِ اَثَرَ السُّجُوْدِ لِیَخَافِیَ اَحَدُکُمْ فِی سُجُوْدِهٖ

الفردوس بما ثور الخطاب ج 1/ص61 رقم 174.

(ترجمه) حضرت انس بن مالك رضی الله تعالیٰ عنه فرمائی چه یقیناً زه د هغه سړی سره بغض او دُشمنی کوم او ډیر بدی ګنړم د کوم سړی د دوو (۲) سترګو په مینځ کښی چې زه توره تابه اووینم کله چې ستاسی یو کس سجده لګولی نو تندی له دی ډیر زور په زمکه نه ورکړی بلکه لری والے دی کوی د ډیر زور نه.

(نوټ) دا روایت بعضی ارباب علم مرفوعًا ذکر کړیدے (یعنی دغه وینا ئې حضرت رسول اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك ته منسوب کړیده چه دا د هغوی مبارك قول دے) لکه علامه صاوی رحمه الله په حاشیه الصاوی ج4/ص134 او علامه خطیب شربینی په تفسیر

السراج المنير ج 4/ص43 المكتبة الحقانية او علامه بقاعي په نظم الدُرر ج8/ص143 كښي خو حقه داده چه دا روايت په حضرت انس رضي الله تعالىٰ عنه موقوف دے (يعني داد هغه قول دے)

د علامه بقاعي قول.

وَلا يُظَنُّ اَنَّ مِنَ السِّيْمَاءِ مَا يَصْنَعُهُ بَعْضُ الْمُرَائِيْنَ مِنْ هَيْئَةِ اَثَرِ السُّجُوْدِ فِي جَبْهَتِهِ فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ سِيْمَا الْخَوَارِجِ وَفِي نِهَايَةِ ابْنِ الْاَثِيْرِ فِي تَفْسِيْرِ الثَّفِنِ وَمِنْهُ حَدِيْثُ اَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ تَعَالىٰ عَنْهُ رَاٰى رَجُلاً بَيْنَ عَيْنَيْهِ مِثْلُ ثَفِنَةِ الْعَنْزِ فَقَالَ لَوْلَمْ يَكُنْ هٰذَا لَكَانَ خَيْرًا يَعْنِيْ كَانَ عَلٰى جَبْهَتِهِ اَثَرُ السُّجُوْدِ وَاِنَّمَا كَرِهَهَا خَوْفًا مِنَ الرِّيَاءِ بِهَا وَقَدْ رَوٰى صَاحِبُ الْفِرْدَوْسِ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالىٰ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ تَعَالىٰ عَلَيْهِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِنِّيْ لَاُبْغِضُ الرَّجُلَ وَاَكْرَهُهُ اِذَا رَاَيْتُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ اَثَرَ السُّجُوْدِ.

نظم الدُرر للبقاعي ج 8/ص143.

(ترجمه) او گمان دې اُنشي په هغه توري تاپې کمه چې بعضي ريا کارانو په خپلو تندو کښي جوړوي چې گني دا هغه نخه ده کمه چې قرآن کريم د صحابه کرامو رضي الله تعالىٰ عنهم صفت کښي بيان کړيده. ځکه چې تندي کښي توره تاپه خو د خوارجو نخه ده.

دابن اثير په نهايه کښي د (لفظ) ثَفِن په تفسير کښي فرماني چه حضرت ابو درداء رضي الله تعالىٰ عنه يو سړے ولېدو چه هغه خپل تندي کښي د چيهلي د زنگون پشان توره تاپه جوړه کړي وه نو حضرت ابودرداء رضي الله تعالىٰ عنه وفرمائيل كچرته دا توره تاپه د ده تندي کښي نه وے دا به ډيره خه خبره وے. او حضرت ابو درداء رضي الله تعالىٰ عنه دا تاپه ځکه بده اُگنړله چه هغه سړه يره وه چه دا د ريا دوجې جوړه ولے شي او صاحب

الفردوس د حضرت انس رضی الله تعالیٰ عنه روایت ذکر کړیدے چه نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم فرمائیلی دی چه یقیناً زه د هغه سړی سره بغض کوم او بدې ګڼرم کله چی : هغه : دوو (۲) سترګو مینځ کښی : سجد اثر اګورم ( یعنی توره تاپه اووینم).

(نوټ) همدا عبارت علامه شربینی رحمه الله په تفسیر السراج المنیر ج4/ص43 رانقل کړیدے او بیا ورستو فرمائی.

وعن بعض المتقدمین کنا نصلی فلا یری بین اعیننا شیء وتری احدنا الان یصلی فیری بین عینیه رکبة البعیر فلا ندری اثقلت الرؤوس ام خشنت الارض وانما اراد بذلك من تعمد ذلك للنفاق.

(ترجمه) : بعض متقدمینو نه رانقل دی چی مونږ خو هم دوام سره مونځونه کاوو خو زمونږ تندو کښی هیڅ تاپه نشی لیدلے خوك او اس مونږ یو سړے ګورو چه مونځ کونی نو تندی کښی د اُبی د زنګون پشان تور داغ لیدلے شی مونږ نه پو هیږو چی د خلقو سرونه درانه شویدی او که زمکی زیګ شویدی.

او : ده مراد دی قول سره هغه خلق دی چه د منافقت دوجی تندو کښی توری تاپی جوړوی.

۷. د حضرت ام المؤمنین میمونه رضی الله تعالیٰ عنها : په دغه توری تاپی.

عن یزید بن الاصم قال قیل لمیمونة رضی الله تعالی عنها الم تر الی فلان ینقر جبهته بالارض یرید ان یؤثر بها اثر السجود فقالت دعه لعله مبلغ.

مصنف ابن ابی شیبه ج 1/ص273/رقم 3139 باب 63

(ترجمه) حضرت یزید بن اصم فرمائي چه حضرت میمونه رضی الله تعالیٰ عنه ته اووئیلے شو چه تاسو هغه فلانی سړی ته نه ګوری چی د هغه تندے به زمکه تونګی وهی غرض ي دا دے چی تندی کښی ي توره تابه پیداشی حضرت میمونه رضی الله تعالیٰ عنه ورته و فرمائیل ورك ي کړه کیدیشی چه دا سړے ریا کار وی.

(یعنی تندو کښی تور داغونه خو دریا کارانو خلقو پیدا کیږی).

۸. د حضرت مجاهد رضی الله تعالیٰ عنه رد په دغه توری تاپی.

عَنْ مَنْصُوْرٍ قَالَ قُلْتُ لِمُجَاهِدٍ (سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُوْدِ) أَهُوَ أَثَرُ السُّجُوْدِ فِي وَجْهِ الْإِنْسَانِ فَقَالَ لَا إِنَّ أَحَدَهُمْ يَكُوْنُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مِثْلُ رُكْبَةِ الْعَنْزِ وَهُوَ كَمَا شَاءَ اللهُ يَعْنِيْ مِنَ الشَّرِّ لٰكِنَّهُ الْخُشُوْعُ

سُنن البیهقی الکبری ج 2/ص 287/رقم 3375

(ترجمه) حضرت منصور فرمائي چه ما د حضرت مجاهد رحمه الله تعالیٰ علیه نه د دی ایت کریمه باره کښی تپوس وکړو ( سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُوْدِ) آیا د دینه مراد دانسان په مخ کښی څه نخه پید کیدل دی نو هغه و فرمائیل چه نه څکه چه دی خلقو کښی د یو کس په تندی کښی د جبهلی د زنګون پشان داغ چه پیداشی نو هغه خو دیر شری انسان وی خومره چی د خدائے تعالیٰ اراده شوی وی لیکن د دغی نخی نه مراد عاجزی ده.

(نوټ) دا روایت تفسیر الطبری ج 22/ص264 او ج 11/ص 369 کښی هم ذکر دے.

او بل روایت د مجاهد رحمه الله تعالیٰ علیه کښی دا الفاظ راغلی دی چی

هُوَ أَقْسىٰ قَلْباً مِنَ الْحِجَارَةِ وَلٰكِنَّهُ نُوْرٌ فِي وُجُوْهِهِمْ مِنَ الْخُشُوْعِ.

الكشف والبيان للثعلبي ج12/ص243 تفسير القرطبي ج16/ص248 وج 16/ص294 تفسير الآلوسي ج19/ص237 تفسير البحر المحيط ج10/ص99 البحر المديد ج6/ص98 المحرر الوجيز ج6/ص162.

(ترجمه) د کوم سړي تندي کښي چې توره تاپه وي د هغه زړه د کانړي نه هم سخت وي.

او دریم روایت کښي مجاهد رحمه الله تعالیٰ علیه فرمائي.

رُبَّمَا كَانَ بَيْنَ عَيْنَي مَنْ هُوَ أَقْسىٰ قَلْباً مِنْ فِرْعَوْنَ.

فتح الباري لابن حجر ج13/ص399

بحر العلوم للسمرقندي ج4/ص173

تفسير ابن كثير ج4/ص260ب وج7 /ص361

(ترجمه) ډیر کرته دا توره تاپه د هغه سړي په تندي کښي را پیدا کیږي چه د هغه زړه د فرعون د زړه نه هم سخت وي او څلورم روایت کښي امام مجاهد رحمه الله تعالیٰ علیه فرمائي.

لَيْسَ بِالنَّدْبِ وَلٰكِنَّهُ صُفْرَةُ الْوُجُوْهِ وَالخشوع.

الفائق في غريب الحديث والأثر ج1/ص445

غريب الحديث لابن قُتيبة ج2/ص257 لسان العرب ج 1 ص 763/ تاج العروس ج 1/ص963 النهاية في غريب الاثر ج5/ص81 غريب الحديث لابن الجوزي ج 2/ص 399. زاد المسير ج5/ص394.

(ترجمه) (ددغي علامي نه مراد کمه چې سورة فتح کښي د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم په صفت کښي ذکر ده) د زخم نشان ندے بلکه مراد

تری عاجزی او د مخونو زیړوالے دے او پنځم روایت کښې امام مجاهد رحمةُ الله تعالیٰ علیه فرمائي.

عَنْ مجاهد (سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم) قَالَ لَيْسَ الْاَثَرُ فِي الْوَجْهِ وَلٰكِنَّهُ الْخُشُوعُ.

الدرالمنثور ج9/ص236 تفسیر الالوسی ج 19/ص 237

(ترجمه) حضرت مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه فرمائي چه مراد د علامې نه پدې آیت کریمه کښې (سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ) په مخ اثر او نخه نده بلکه دینه مراد عاجزي ده.

شپږم روایت د حضرت مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه.

عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ قَالَ شَكَوْتُ إِلَى مُجَاهِدٍ الَّا تَرَيْنَ عَنِّي فَقَالَ لِيْ إِذَا سَجَدْتَ فَتَجَافَ.

مصنف ابن أبي شيبة ج1/ص273/رقم 3141.

(ترجمه) حضرت حبیب بن أبی ثابت فرمائي چه زما تندی کښې تور داغ پیدا شو نو ما حضرت مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه ته شکایت اکړو( چه زه دې تاپې سره څه وکړم) هغه وفرمائیل چه کله سجده کوئې نو لرے والے کوه (یعنې تندي له په زمکه ډیر زور مه ورکوه. او سجده نرمه لګوه)

(نوټ) بعضې کسانو نه ما اوریدلی دي چې سجده به په زمکه دومره سخته لګولی چه کچرته ستا تندی لاندې توره چنړه کیخودلے شي چه هغه ماته شي. (مترجم)

داخیره 100/100 غلطه ده ځکه چه نعمان بن أبی عیاش فرمائي شَكَى إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ تَعَالَىٰ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ اِلَّا دُغَامُ وَالَا عُتِمَادُ فِي الصَّلٰوةِ فَرَخَصَ لَهُمْ اَنْ يَسْتَعِيْنَ الرَّجُلُ بِمِرْفَقِهِ عَلَى رُكْبَتِهِ اَوْ فَخِذِهِ.

(ترجمه) دوی شکایت اکړو نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه علی اله وسلم مبارك ته د ادغام نه او داعتماد نه په مانځه کښې نو نبی کریم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك ورله رخصت ورکړو چه مونځ کونکے دې مدد حاصلولی په خپلو ځنګلو سره په زنګونونو یا په پتونونو سره.

نبی کریم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك به سجده کښلاؤ لګوله اولا سونه مبارك به ې کښلاوساتل تر دې پوره چې ښکاره بشو سپین والے د ترخو مبارکو د دوی غرض ې داوؤ چې په زمکه خفیفه سجده راشی او ډیره درنه سجده به ې نه لګوله. او حضرت عطاء بن ابی رباح رحمة الله تعالیٰ علیه به فرمائیل خِفُّوا عَلَی الْاَرضِ سپکوالے کوی په زمکه په سجده کښې (یعنی تندوله ډیر زور مه ورکوئ).

د حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله د قول وضاحت.

قَالَ ابو عبید: وَجْهُهٗ اَنَّهٗ یُرِیْدُ ذَالِكَ فِی السُّجُوْدِ یَقُوْلُ لَا تُرْسِلْ نَفْسَكَ عَلَی الْاَرْضِ اِرْسَالًا ثَقِیْلًا فَیُؤَثِّرُ فِیْ جَبْهَتِكَ وَیُبَیِّنُ ذٰلِكَ حَدِیْثُ مُجَاهِدٍ اَنَّ حَبِیْبَ بْنَ اَبِیْ ثَابِتٍ سَاَلَهٗ. قَالَ اِنِّیْ اَخْشٰی اَنْ یُؤَثِّرَ السُّجُوْدُ فِیْ جَبْهَتِیْ؟ قَالَ اِذَا سَجَدْتَ فَتَجَافَ. یعنی خَفِّفْ نَفْسَكَ وَجَبْهَتَكَ وَبَعْضُ النَّاسِ یَقُوْلُوْنَ فَتَخَافَ والمحفوظ عندی بالخاء.

(ترجمه) ابو عبید فرمائی یعنی مخ چې سجده کښې لګوی نو په زمکه باندې به ې ډیر درونډ نه ورپر پدې چې بیا د هغې سره ې په تندی کښې تاپه پیداشی.

حضرت شیخ استاذی المکرم فرمائی چه د دې بیان په حدیث د مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه کښې شوید ے چه حضرت حبیب بن ابی ثابت تری پښتنه وکړه چې زه یریږم چې هسې نه سجدې سره زما په تندی کښې ا:

توری تاپی) اثر پیدانښی مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه ورته و فرمائیل چه کله هم سجده لګوی نو دغه بره کوه (نو دا تاپه به ستا په تندی کښی خدائے تعالیٰ نه پیدا کوی) او بعضی علماء فرمانی چه مجاهد رحمة الله تعالیٰ علیه ورته وفرمائیل (فَتْخاف) یعنی سجده کښی لری والے کوه ډیر زور مه لګوه. خو زما په نزد محفوظ په خاء سره دے یعنی (فَتْخاف) د توری تاپی نه په بره کښی اُسیږه. حضرت شیخ صاحب مبارك فرمانی چی امام بن ابی شیبه ذکر کړیدی.

مَنْ كَرِهَ ذٰلِكَ وَمَنْ رَخَّصَ فِيْهِ ذَكَرَ عَنِ ابن عُمَرَ رضی الله تعالیٰ عنهما اَنَّه رَاٰی رَجُلاً قَدْ اَثَّرَ السُّجُوْدُ فِي جَبْهَتِهِ فَقَالَ لَا يَشِيْنُ اَحَدُكُمْ وَجْهَهُ وَكَرِهَهُ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وِقَاص وَاَبُوالدَّرْدَاءِ والشَّعْبِيُّ وَعَطَاءُ.

غریب الحدیث لاَبِیْ عبید ج4/ص472.

العباب الذاخر ج 1/ص403 لسان العرب ج 14/ص174 تاج العروس ج1/ص5816 غریب الحدیث لابن سلام ج4/ص472.

(ترجمه) امام ابن ابی شیبة هغه اشخاص ذکر کړیدی چه چا دا توره تاپه بدګنړلی ده او بیا ی ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما ذکر کړیدے چه دوی مبارك یو سړے الیدو چه سجدی سره ي تندی کښی داغ جوړ وو نو حضرت ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما وفرمائیل ندی عیب زن کوئی ستاسی یو کس خپل مخ (پدی توری تاپی) او حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله تعالیٰ عنه او حضرت ابو درداء رضی الله تعالیٰ عنه او حضرت شعبی او عطاء رحمهما الله هم دا تاپه ډیر بده ګنړله.

۹. د حضرت شعبی رحمة الله تعالیٰ علیه رد په دغه توری تاپی.

عن حريث عن الشعبي انه كره الا تزلي الزجو.

مصنف ابن أبي شيبة ج1/ص273 رقم 3140. وج 1/ص342

(ترجمه) حضرت حريث فرمائي چه حضرت شعبي رحمة الله تعالىٰ عليه په تندي کښې تور داغ ډير بد ګڼړلو.

۱۰. د حضرت ضحاك رحمة الله تعالىٰ عليه رد په دغه توري باندې.

اما انه ليس بالندب في الوجوه.

الكشف والبيان للثعلبي ج 12/ص243. الكشاف ج 6/ص360 تفسير القرطبي ج 16/ص294.

(ترجمه) حضرت ضحاك رحمة الله تعالىٰ عليه فرمائي چه مراد د دغه نخې نه په مخونو کښې د زخم نشان ندے.

۱۱. د بعضې متقدمينو رحمهم الله علماء رد په دغه توري باندې.

وعن بعض المتقدمين كنا نصلي فلا يرى بين اعيننا شيء ونرى احدنا الآن يصلي فيرى بين عينيه ركبة البعير فما ندري اثقلت الارؤس ام خشنت الارض وانما اراد بذلك من تعمد ذلك للنفاق.

الكشاف ج 6/ص360 تفسير الالوسي ج 19/ص236 تفسير السراج المنير ج 1/ص4202.

(ترجمه) د بعضې پخواني علماء كرام رحمهم الله نه نقل دي چې مونږ خو د ډير زمانې نه مونځونه كاوو خو زمونږ تندو كښې چا نه هم توره ټاپه نه ښكاري او نن زمونږ يو كس يو خو ورځې مونځونه اكري او بيا ئې تندى كښې ځانته تور داغ جوړ كړے وي پس مونږ نه يو هيږد چه د خلقو سرونه درانه شويدي او كه زمكې زيګ (سخته) شويده خو دا خبره ئې: ععه

خلقو باره کښې کړيده چې دا منافقت دباره دا توري تاپې پيدا کوي.

د نبي اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارک د زمانې د توري تندې والا د يو شخص واقعه. (از مترجم)

وَرُوِی اَنَّ رَسُوْلَ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم کَانَ جَالِساً فِی جَمَاعَةٍ مِنْ اَصْحَابِه فَذَکَرُوْا رَجُلاً وَاَکْثَرُوْا الثَّنَاءَ عَلَیْهِ فَبَیْنَاهُمْ کَذَالِكَ اِذْ طَلَعَ عَلَیْهِمُ الرَّجُلُ وَوَجْهُهُ یَقْطُرُ مِنْ اَثَرِ الْوُضُوْءِ قَدْ عَلَّقَ نَعْلَهُ بِیَدِهِ وَبَیْنَ عَیْنَیْهِ اَثَرُ السُّجُوْدِ فَقَالُوْا یَارَسُوْلَ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِی وَصَفْنَاهُ فَقَالَ علیه الصلوٰة والسلام اَرٰی عَلٰی وَجْهِهِ سَفْعَةً مِنَ الشَّیْطَانِ فَجَاءَ الرَّجُلُ حَتّٰی سَلَّمَ وَجَلَسَ مَعَ الْقَوْمِ فَقَالَ النبی علیه الصلوٰة والسلام اَنْشُدُكَ الله هَلْ حَدَّثَتْ نَفْسَكَ حِیْنَ اَشْرَفْتَ عَلَی الْقَوْمِ اَنَّهُمْ لَیْسَ فِیْهِمْ خَیْرٌ مِنْكَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ نَعَمْ. الربع الاول من الاحیاء ص 80.

(ترجمه) امام غزالي رحمة الله تعالیٰ علیه په احیاء علوم کښې فرمائي چه نبي اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك د صحابه کرامو رضي الله تعالیٰ عنهم سره ناست وو نو صحابه کرامو ورته د يو سړي ډير صفات بيان کړل اچانك هم هغه سړے راغے او د ګيرې نه ي د اودس د ابو خاخکي بهيدل او خپل لاس کښې خپلې زوږنده کړې وه او په تندي کښې تور داغ وو صحابه کرامو رضي الله تعالیٰ عنهم وفرمائيل چه يا رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارکه دا هغه سړے دے چې مونږ ي تاته صفتونه بيانول پيغمبر صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك وفرمائيل چې ماته دده په مخ کښې د شيطان اثر ښکاري بيا کله چې هغه د توري تاپې والا سړے صحابه کرامو رضي الله تعالیٰ عنهم له نزدې راغے نو نبي اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك ورته وفرمائيل چې

زه تاله په خدائے باندی قسم درکوم چی تا کله د اصحابه کرامو البدل نو تا به زره کښی دا خبره اکره کنه چی پدی تمام صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم کښی زما بهتر انسان نشته هغه اوونیل چه هو زه د دی تولو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم نه خپل ځان بهتر گنړم.

(نوټ) نن هم د تورو تاپو خلق ځان د دیر و پاکانونه اوچت گنړی (از مترجم).

پنځم مبحث په ذکر د خوار جو او د تورو تاپو د هغی کښی.

۱. د خوارجو د مشر د ذوالخو یصرة په تندی کښی توره تاپه وه.

بحواله مصنف ابن ابی شیبة ج 7/ص559/رقم 37917.

عَنْ شَرِيْكِ بْنِ شِهَابِ الْحَارِثِيِّ قَالَ جَعَلْتُ اَتَمَنّٰى اَنْ اَلْقٰى رَجُلاً مِنْ اَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صلی الله تعالی علیه واله وسلم يُحَدِّثُنِيْ عَنِ الْخَوَارِجِ فَلَقِيْتُ اَبَابَرْزَةَ الاسلمی فِیْ نَفَرٍ مِنْ اَصْحَابِهِ فِیْ یَوْمِ عَرَفَةَ فَقُلْتُ حَدِّثْنِیْ بِشَیْءٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُوْلِ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم يَقُوْلُهُ فِی الْخَوَارِجِ فَقَالَ اُحَدِّثُكُمْ بِمَا سَمِعَتْ اُذُنَایَ وَرَاَتْ عَيْنَایَ اُتِیَ رَسُوْلُ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم بِدَنَانِيْرَ فَجَعَلَ يُقَسِّمُهَا وَعِنْدَهُ رَجُلٌ اَسْوَدُ مَطْمُوْمُ الشَّعْرِ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ اَبْيَضَانِ بَيْنَ عَيْنَيْهِ اَثَرُ السُّجُوْدِ وَكَانَ يَتَعَرَّضُ لِرَسُوْلِ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم فَلَمْ يُعْطِهِ فَاَتَاهُ فَتَعَرَّضَ لَهُ مِنْ قِبَلِ وَجْهِهِ فَلَمْ يُعْطِهِ فَاَتَاهُ مِنْ قِبَلِ يَمِيْنِهِ فَلَمْ يُعْطِهِ شَيْئًا ثُمَّ اَتَاهُ مِنْ قِبَلِ شِمَالِهِ فَلَمْ يُعْطِهِ شَيْئًا ثُمَّ اَتَاهُ مِنْ خَلْفِهِ فَلَمْ يُعْطِهِ شَيْئًا فَقَالَ يَامُحَمَّدُ (صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم) مَاعَدَلْتَ مُنْذُ الْيَوْمِ فِی الْقِسْمَةِ فَغَضِبَ رَسُوْلُ الله صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم غَضَبًا شَدِيْدًا ثُمَّ قَالَ وَالله لَا تَجِدُوْنَ احداً اَعْدَلَ عَلَيْكُمْ مِنِّیْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ يَخْرُجُ عَلَيْكُمْ رِجَالٌ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ كَانَ هٰذَا مِنْهُمْ هَدْيُهُمْ هٰكَذَا يَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ ثُمَّ

لا يَعُودُونَ وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى صَدْرِهِ سِيمَاهُمُ التَّحْلِيقُ لَا يَزَالُونَ يَخْرُجُونَ حَتَّى يَخْرُجَ آخِرُهُمْ مَعَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمْ فَاقْتُلُوهُمْ ثَلَاثًا هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ يَقُولُهَا ثَلَاثًا.

مسند احمد ج 43/ص115/ رقم 20314 و مسند احمد ج 5/ص42 رقم 20451 المستدرك ج 6/ص 255 رقم 2599 وج 2/ص160 رقم 2647 جامع الاحاديث للسيوطي ج 38/ص269 رقم 41446 مجمع الزوائد و منبع الفوائد ج 6/ص242 رقم 10404 اتحاف الخيرة المهرة بزوائد المسانيد العشرة ج 8/ص22/ رقم 7482 غاية المقصد في زوائد المسند ج 2/ص188 السنة لابن أبي عاصم ج 2/ص454/ رقم 774 فضائل القرآن للفريابي ج 1/ص188/ رقم 176 مسند الروياني ج 2/ص385/رقم 748 فتح الباري لابن حجر ج 19/ص389.

(ترجمه) حضرت شريك بن شهاب الحارثي فرمائي زما دا تمنا وه چې اووينم يو شخص د پيغمبر صلى الله تعالىٰ عليه وعلى اله وسلم مبارك د صحابه كرامو رضي الله تعالىٰ عنهم سره چه ماته د خوارجو باره كښې احاديث بيان كړي نو بيا زما د عرفې په ورځ ملاقات د حضرت ابوبرزه السلمي رضي الله تعالىٰ عنه سره اوشو پداسې حال كښې چه ملګرې هم ورسره وو ما ورته عرض اوكړو چې تاسو ماته هغه احاديث بيان كړي كم چې تاسو پخپله د نبي اكرم صلى الله تعالىٰ عليه وعلى اله وسلم مبارك نه د خوارجو باره كښې اوريدلې وي. حضرت ابوبرزه أسلمي رضي الله تعالىٰ عنه وفرمائيل زه تا ته هغه احاديث بيانوم كم چې زما دې غوږونو اوريدلې او يا هغه خبره درته بيانوم كمه چې زما دې دواړو سترګو ليدلې ده هغه

داچې حضرت رسول اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارت ته د
غنیمت چند د نانیر حاضر کړشو او محبوب خدا صلی الله تعالیٰ علیه
وعلیه اله وسلم د هغې په تقسیم باندې شروع اکړه نو دغلته یو تورمخ والا
گنهو ویختو والا سړے وو چې دوه سپینې جامې ئې په بدن وې او تندې
کښې توره تاپه لګېدلې وه او د نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله
وسلم مبارک مخې مخې ته کیدو خو نبی علیه الصلوٰة والسلام مبارک ده
له هیڅ ورنکړل دا سړے بیا د نبی طرف او د کس طرف او: ورستو طرف
نه راغے کو محبوب صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارک وړله
هیڅ ورنکړل دغه سړي اووئیل اے محمد (صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله
وسلم) نن ورځ تا پدې تقسیم کښې هیڅ انصاف اونکړو "العیاذ بالله"
حضرت رسول اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارک دې خبرې
اوریدو سره ډیر سخت غصه شو او بیا وفرمائیل په خدائے قسم تاسو به
خپل ځان دپاره زما ډیر انصاف والا شخص اونه مومې او داخبره دوې
مبارک درې (۳) ځلې وفرمائیله بیا ئې وفرمائیل چې د مشرق د طرف نه څه
خلق به تاسو راشي چې د هغې نشانات به داوي چې قرآن کریم به لولي
خو د مرې نه به ئې ښکته نه تیرېږي او د دین اسلام نه به داسې وتلي وي
لکه غشے چې د لیندې نه ووځي دوی به بیا دین اسلام ته واپس نه راځي
او بیا نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارک خپل لاس
مبارک په سینه د ده کیخودلو او وې فرمائیل نخه د دوې به د سرونه خریل
وي. او دوې به همیشه ډیر سیوي تردې چې آخرې سړے د دوې به دجال
لښکر کښې راووځي نو کله چې تاسو دا خلق اولیدل جنګ ورسره اکړې دا

خبره نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم مبارك دری ځل اکره او بیاې دری (۳) ځل وفرمائیل چه داخلق د( اوچی او د لوندی) د تمام مخلوق نه ناکاره دی.

حضرت شیخی المکرم فرمائی لَوْكَانَ هٰذِهٖ مِنْ سِيْمَاءِ الصَّالِحِيْنَ فَكَيْفَ وُجِدَتْ فِی جَبْهَةِ الطَّالِحِ الشَّقِیِّ بَلْ اَشْقَی النَّاسِ.

(ترجمه) کچرته په تندی کښی توره ټاپه د نیکانو علامه او نخه او خاصه وے نو بیا څنګه د دی بدکاره بدبخته ذوالخو یصرة په تندی کښی دا ټاپه موجود شوی وه.

۲. د حضرت علی المرتضی رضی الله تعالیٰ عنه مبارك د قاتل د عبدالرحمن بن ملجم مرادی بدبخته په تندی کښی داتوره ټاپه وه.

بحواله الطبقات الکبری لابن سعد ج 3/ص93

وَكَانَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ مُلْجِمٍ فِی السِّجْنِ فَلَمَّامَاتَ عَلِیٌّ رضوانُ الله تعالی عَلَيْهِ ورحمتُه وبركاته وَدُفِنَ بَعَثَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِیٍّ اِلٰی عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ مُلْجِمٍ فَاَخْرَجَهٗ مِنَ السِّجْنِ لِيَقْتُلَهٗ فَاجْتَمَعَ النَّاسُ وَجَاءُوْهُ بِالنَّفْطِ وَالْبَوَارِیِّ وَالنَّارِ فَقَالُوْا نُحَرِّقُهٗ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ وَحُسَيْنُ بْنُ عَلِیٍّ وَمُحَمَّدُ بْنُ الْحَنَفِيَّةِ دَعُوْنَا حَتّٰی نَشْفِیَ اَنْفُسَنَا مِنْهُ فَقَطَعَ عَبْدُ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَلَمْ يَجْزَعْ وَلَمْ يَتَكَلَّمْ فَكَحَلَ عَيْنَيْهِ بِمِسْمَارٍ مُحْمٰی فَلَمْ يَجْزَعْ وَجَعَلَ يَقُوْلُ (اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ) حَتّٰی اَتٰی عَلٰی آخِرِ السُّوْرَةِ كُلِّهَا وَاِنَّ عَيْنَيْهِ لَتَسِيْلَانِ ثُمَّ اُمِرَ بِهٖ فَعُوْلِجَ عَنْ لِسَانِهٖ لِيَقْطَعَهٗ فَجَزَعَ فَقِيْلَ لَهٗ قَطَعْنَا يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ وَسَمَلْنَا عَيْنَيْكَ يَا عَدُوَّ اللهِ فَلَمْ تَجْزَعْ فَلَمَّا صِرْنَا اِلٰی لِسَانِكَ جَزِعْتَ؟ فَقَالَ مَا ذَاكَ مِنِّیْ مِنْ جَزَعٍ اِلَّا اِنِّیْ اَكْرَهُ اَنْ اَكُوْنَ فِی الدُّنْيَا فُوَاقًا لَا اَذْكُرُ اللهَ فَقَطَعُوْا لِسَانَهٗ ثُمَّ جَعَلُوْهُ فِیْ قَوْصَرَةٍ وَاَحْرَقُوْهُ بِالنَّارِ وَالْعَبَّاسُ بْنُ عَلِیٍّ يَوْمَئِذٍ صَغِيْرٌ

فلم سیٔاذن بہ بلوغہ وکان عبد الرحمٰن بن ملجم رجلاً اسمر حسن الوجہ افلج شعرہ مع شحمۃ اذنیہ فی جبھتہ اثر السجود.

(ترجمه) په حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنه مبارك باندی د گذار کولو نه ورستو گذار کونکے عبدالرحمن بن ملجم مرادی جیل خانه کښی بندی وو خو کله چی علی رضی الله تعالیٰ عنه مبارك شهید شو. او بیا دفن کړیشو او حضرت حسن بن علی رضی الله تعالیٰ عنه یو کس عبدالرحمن بن ملجم مرادی پسی جیل خانی الیږلو او هغه ئی د جیل خانی نه بهر کړو او د هغه د قتل اراده ی وفرمائیله نو ډیر خلق راجمع شو او خلقو د ځان سره تیل او نغرے او اور راوړل چی مونږ دا خارجی سوزؤ نو حضرت عبدالله بن جعفر رضی الله تعالیٰ عنها و حسین بن علی رضی الله تعالیٰ عنهما او محمد بن الحنفیة رضی الله تعالیٰ عنه وفرمائیل چه مونږ وریږدی چی دا زړونه پری یخ کړو عبدالله بن جعفر رضی الله تعالیٰ عنه تری لاسونه اوخپی پری کړل خو عبدالرحمن بن ملجم خارجی هیڅ فریاد او هیڅ فریاد انکړو صبرف دومره ی اووئیل چی ته د خپل تره سترگی په گرم غشی دړد مندی کوئ او لګیاوو چی دا ایتونه ی تلاوت کول.

(اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِی خَلَقَ) الخ ان تردی چی دا سورت ی تر آخره ختم کړو او د دواړو سترگو نه ی وینه بهیدله بیا امام حسن رضی الله تعالیٰ عنه امر اکړو چی دا ژبه وررته پری کړی پدغه وخت کښی دغه خارجی فریاد شروع کړو. حاضرینو کښی یو کس تری پښتنه وکړه چی مونږ ستا لاسونه او خپی پری کړی او دواړه سترگو کښی مو درته گرم سیخونه راښکل نو اے دالله دشمنه تا هیڅ فریاد نه کولو اس کله چی مونږ ستا د ژبی د پری کولو

اراده اکړه نو ته فریاد کوې؟

دغه خارجي اوونیل چې د ژبې په پرې کولو فریاد نه کوم بلکه دا فریاد ځکه کوم چې دنیا کښې به زه غافله دالله تعالیٰ د ذکر نه پاتې شم.

حاضرینو ورله ژبه پرې کړه او بیا ې د نچو یو پچې کښې بند کړو او په اورې اسیزلو او حضرت عباس بن علی رضی الله تعالیٰ عنه مبارك په دغه ورځ معصوم وو او بلوغ ته نه و ورسیدلے او دا پلیت خارجي عبدالرحمن بن ملجم مرادي سپین رنګ والا ښکلی مخ والا زوړندو ویختو والا سړے وو چې د غوږونو د نرمی سره ې د سرویخته زوړندوو او په تندی کښې توره تاپه وه.

(نوټ) قارئینو لږ دانصاف نظر اوکړی چې هغه بے دینه انسان چې دهغه علی رضی الله تعالیٰ عنه مبارك قاتل او د نبی اکرم صلی الله تعالیٰ علیه واله وسلم په ژبان ورته (اَشْقَی النَّاسِ) د ټولو خلقو نه ډیر بدبخته وئیلے شویدے د هغه په تندی کښې هم توره تاپه وه نو چې نن کم خلق دی تاپې ته جنتی محراب وائی نو آیا دا جنتی محراب د داسې بے دینانو تندوکښې هم موجود وو.

۳. د خوارجو د مشر د عبدالله بن وهب الراسبي په تندی کښې توره تاپه وه.

بحواله الکامل فی التاریخ لِاَ بْنِ الاثیر ج 2/ص82 تاریخ الرسل والملوك للطبری ج 3/ص115/ وتاریخ ابن خلدون ج 2/ص179 وَالفَظُ لابن الأثير

ثُمّ انّ الخوارج لَقِی بعضُهُمْ بَعْضًا وَاجْتَمَعُوْا فِی مَنْزِل عَبْدِاللهِ بن وَهْب الرَّاسِبي فخطبهم فَزَهَّدَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَاَمَرَهُمْ بِالْاَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيِ عَنِ الْمُنْكَرِ ثُمَّ قَالَ اخْرِجُوْ ابِنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا اِلٰى بَعْضِ كُوَرِ الْجِبَالِ اَوْاِلٰى بَعْضِ هٰذِهِ

الْمَدَائِنِ مُنْكِرِيْنَ لِهٰذِهِ الْبِدَعِ الْمُضِلَّةِ فَقَالَ لَهُ حَرْقُوْصُ بْنُ زُهَيْرٍ: اِنَّ الْمَتَاعَ بِهٰذِهِ الدُّنيَا قَلِيْلٌ وَاِنَّ الْفِرَاقَ لَهَا وَشِيْكٌ فَلَا تَدْعُوَنَّكُمْ زِيْنَتُهَا وَبَهْجَتُهَا اِلَى الْمُقَامِ بِهَا وَلَا تَفْتِنَنَّكُمْ عَنْ طَلَبِ الْحَقِّ وَاِنْكَارِ الظُّلْمِ فـ( اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَالَّذِيْنَ هُمْ مُحْسِنُوْنَ) النحل 128. فَقَالَ حَمْزَةُ ابْنُ سِنَانِ الْاَسَدِيِّ يَا قَوْمِ اِنَّ الرَّأْيَ مَا رَأَيْتُمْ فَوَلُّوْا اَمْرَكُمْ رَجُلًا مِنْكُمْ فَاِنَّكُمْ لَا بُدَّ لَكُمْ مِنْ عِمَادٍ وَسِنَادٍ وَرَايَةٍ تَحُفُّوْنَ بِهَا وَتَرْجِعُوْنَ اِلَيْهَا فَعَرَضُوْهَا عَلٰى زَيْدِ بْنِ حُصَيْنِ الطَّائِيِّ فَاَبٰى وَعَرَضُوْهَا عَلٰى حَرْقُوْصِ بْنِ زُهَيْرٍ فَاَبٰى وَعَلٰى حَمْزَةَ بْنِ سِنَانٍ وَشُرَيْحِ بْنِ اَوْفَى الْعَبْسِيِّ فَاَبَيَا وَعَرَضُوْهَا عَلٰى عَبْدِاللّٰهِ بْنِ وَهْبٍ فَقَالَ هَاتُوْهَا اَمَا وَاللّٰهِ لَا اٰخُذُهَا رَغْبَةً فِي الدُّنْيَا وَلَا اَدَعُهَا فَرَقًا مِنَ الْمَوْتِ فَبَايَعُوْهُ لِعَشْرٍ خَلَوْنَ مِنْ شَوَّالٍ وَكَانَ يُقَالُ لَهُ ذُو الثَّفِنَاتِ.

(ترجمه) بیا خوارج بعضی د بعضی سره مخ شو او د عبدالله بن وهب الراسبی کور کښی راجمع شو او عبدالله بن وهب الراسبی ورته خطبه اوونیله او د دنیا نه بے رغبتی ئې ورته بیان کړه او په نیکی باندی امر او د بدی نه نهی ئې ورته اوکړه او بیا اوونیل راځی چی لاړ شو د دی کلی د ظالمانو نه د غرونو غارونو ته اویا بعض ښاریو ته چی دا بدعت ګمراهی نه منی حرقوص بن زهیر اوونیل چی دنیا باندی فائده اغستل.......... او د دنیا جدائ جلد راتلونکی ده نو د دنیا تازګی او ښائست دی تاسو د دنیا ژوند ته دا دعوت نکړی او دا دنیا دی تاسو فتنه کښی ګذارنکړی د طلب د حق نه او په ظلم د انکار کولو نه ځکه چه الله تعالیٰ د هغه خلقو سره دے کوم خلق چی تقویٰ او نیکی کوئ.

بیا حمزه بن سنان اوونیل اے قومه صحیح رأی دا ده چی نظر او سوچ او مشوره اکړی او یو سړے د دی خوارجو د ډلی مشر کړی ځکه چی مونږ له

یوه تکیه گاه او پناه گاه ضروری ده چی مونږ تول هغې ته رجوع کاوو او د خپل مشر د خبری اقتدار اکړو بیا دغی خوارجو دامشری زیدبن حصین طائی ته وړاندی کړه خو هغه تری انکار اکړو دوی بیا حرقوص بن زهیر ته وړاندی کړه هغه هم انکار اکړو بیاې حمزه بن سنان او شریح بن اوفی عبی ته وړاندی کړه خو دغی دواړو تری هم انکار اکړو بیا آخر کښی خپل رئیس عبدالله بن وهب الراسبې خارجی ته پیش کړه نو هغه اووئیل چی راکړی دا مشری زما قبوله ده. خبر دار والله چی زه دا مشری د دی وجی نه نه اخلم چی زما د دنیا سره مینه ده او د دی وجی ی نه پریدم چی گنی زه د مرگ نه یریږم بیا تمام خارجیانو ورسره په یولسم (۱۱) تاریخ د شوال بیعتونه کړل او ده ته ذُوالثَّفِنَات وئیلے شو.

ځکه چی د ده په تندی کښی د اُبِن د زنکون پشان تور داغ لګیدلے وو.

د ثفنات معنیٰ ده. یَحْصُلُ فِی الرُّکْبَةِ مِنْ اَثَرِ الْبُرُوْكِ بحواله جامع الاحادیث ج31/ص497/رقم 34653 مجمع الزوائد و منبع الفوائد ج6/ص260/رقم 10451 تاریخ دمشق ج11/ص310 تاریخ بغداد ج7/ص244.

(ترجمه) ثفنات وئیلے شی د اُبِن د زنګون کښی هغه تور او کلك داغ ته چی د اُبِن د ډیر کیناستلو دوجی نه د هغه زنګون کښی جوړ شوی وی.

(نوټ) قارئینو کرامو معلومه شوه چی په تندی کښی توره تاپه د خوارجو نشانه ده او خوارج د جنهم سپی دی.

عَنْ اِبْنِ اَبِیْ اَوْفٰی قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم اَلْخَوَارِجُ کِلَابُ النَّارِ. ابن ماجه شریف ص 16.

(ترجمه) حضرت ابن ابی اوفیٰ فرمائی چه حضرت رسول اکرم صلی الله صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله وسلم فرمائیلی ددی چه خوارج د جنهم سپی دی. (از مترجم)

۴. داکثرو خوارجو په تندو کښی د اوښ د زنګون پشان توری تاپی وی.

بحواله المعجم الاوسط للطبرانی ج 9/ص252 رقم 4199.

عَنْ جُنْدُبٍ قَالَ لَمَّا فَارَقَتِ الْخَوَارِجُ عَلِيًّا رضی الله تعالی عنه خرج فی طلبهم وَخَرَجْنَا مَعَهُ فَانْتَهَيْنَا اِلٰى عَسْكَرِ الْقَوْمِ فَاِذَا لَهُمْ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ وَفِيْهِمْ اَصْحَابُ الثَّفِنَاتِ وَاَصْحَابُ الْبَرَانِسِ فَلَمَّا رَاَيْتُهُمْ دَخَلَنِيْ مِنْ ذٰلِكَ شَكٌّ فَتَنَحَّيْتُ فَرَكَزْتُ رُمْحِيْ وَنَزَلْتُ عَنْ فَرَسِيْ وَوَضَعْتُ تُرْسِيْ فَنَثَرْتُ عَلَيْهِ دِرْعِيْ وَاَخَذْتُ بِمَقُوْدِ فَرَسِيْ فَقُمْتُ اُصَلِّيْ اِلٰى رُمْحِيْ وَاَنَا اَقُوْلُ فِيْ صَلَاتِيْ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ قِتَالُ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَكَ طَاعَةً فَائْذَنْ فِيْهِ وَاِنْ كَانَ مَعْصِيَةً فَاَرِنِيْ بَرَاءَتَكَ قَالَ فَاَنَا كَذٰلِكَ اِذْ اَقْبَلَ عَلِيٌّ عَلٰى بَغْلَةِ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله تعالی علیه وعلی اله وسلم فَلَمَّا حَاذَانِيْ قَالَ تَعَوَّذْ بِاللهِ يَا جُنْدُبُ مِنَ الشَّكِّ فَجِئْتُ اَسْعٰى اِلَيْهِ.

(ترجمه) د حضرت جندب نه روایت دے چی کله خوارج د حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنه دیری خواره واره شول مونږ د حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنه سره د خوارجو په تلاش کښی د کلی نه اووتو کله چی د خوارجو لښکر ته اورسیدو نو هغی د قرآن کریم تلاوت باندی داسی بنګیدل (برېدل) لکه چی د شاتو مچی بنګیږی او برېږی. او ډیر خوارج پکښ داسی وو چی تندو کښی توری تاپی جوړی وی او غټی ټوپی پسر وی. حضرت جندب فرمائی کله چی ما دوی الیدل نو زما زړه کښی شک ګذار شو چی داخو ګنی ښه خلق دی پس زه یو طرفته شم او خپله

نیزه مې زمکه کښې ښخه کړه او داس نه کوزشم او خپل جنګ سامان ډال وغیره مې کیخودل او د آس واګې مې وتړل او مانځه کښې اودریدم مخامخ خپل نیزې ته او په زړه کښې مې دا د ځان سره ونیل چې یا الله کچرته د دې خوارجو سره جهاد کول ستا تابعداري وي نو ماله پکښې اجازت راکړې او کچرته ستا نافرماني وي نو ماته د خلاصي لار اُښایه. ما هم دغسې سوچونه کول چې اچانك راباندې حضرت علي رضي الله تعالیٰ عنه مبارك راغ او زما خواکښې زما سره برابر اودریدو او ماته ې وفرمائیل اے جندبه د داسې شکونو نه د خدائے په ذات سره پناه اُغواړه.

حضرت جندب فرمائي چه دې خبرې اوریدو سره زه د حضرت علي رضي الله تعالیٰ عنه پسې روان شم او د خوارجو قتل پسې مې د علي رضي الله تعالیٰ عنه ملګرتیا کښې منډې وهلې.

(نوټ) معلومه شوه چې خوارج به د منافقت دوجې د قرآن کریم تلاوتونه هم کوني خو د تندو تورو تاپو ته ې کتل پکار دي او د هغې په ظاهري نیك اعمالو دهوکه کیدل ندي پکار. (از مترجم)

(اعتراض) حضرت علي بن حسین زین العابدین رضي الله تعالیٰ عنه ته او علي بن عبدالله بن عباس أبي الاملاك رضي الله تعالیٰ عنه ته ذُوالثفنات وئیلې شویدې ځکه چې د هغې مخ کښې د سجدې نخې جوړې شوې وې.

جواب: بے شکه چې ګڼړ کتابونو کښې دغې مبارکانو ته د ذوالثفنات نسبت شویدے لکه البحر المحیط ج 10/ص 100 او تفسیر النسابوري ج 7/ص 34 او تفسیر کشـ ـ ج 6/ص 360 او تفسیر ابي سعود

ج6/ص178 او تفسیر حقی ج14/ص42 خو د دغه ذوالثفنات معنیٰ دانده
چی گنی د دوی په تندو کښی توری تاپی لگیدلی وی بلکه گنړ کتابونو نه
ثابت دی چی د دوی زنگون کښی د ډیر سجدو دوجی تور داغ لگیدلے وو
نو ځکه بی ې ورته ذوالثفنات ونیلو بحواله تهذیب الکمال للمزی ج
35/ص41.

ذوالثفنات علی بن الحسین زین العابدین رضی الله تعالیٰ عنه سُمِّیَ بذلك
لِاَنَّهٗ كَانَ يُصَلِّيْ كُلَّ يَوْمٍ اَلْفَ رَكْعَةٍ فَصَارَفِي رُكْبَتَيْهِ مِثْلَ ثَفْنَاتِ الْبَعِيْرِ.

(ترجمه) حضرت علی بن حسین زین العابدین رضی الله تعالیٰ عنه ته
ذوالثفنات وائی دا نوم ورته ځکه الخبودلے شویدے چه دہ به هر ورځ
1000 (ایك هزار) رکعته نفل کول نو په زنگون کښی تور داغ پیدا شوے
وو د اُبښ د زنگون د داغ پشان.

(نوټ) معلومه شوه چی کمو خوارجو ته د ذوالثفنات نسب شویدے نو
هغه مطلق دے فلهذا د هغی حمل کول د د دوی د تندو په تاپو صحیح
دے او د زین العابدین رضی الله تعالیٰ عنه باره کښی دانسبت چی
شویدے نو هغه په قید د زنگون سره مقید دے او شك نشته د سجدی
دوجی نه د ډیر بزرگانو په زنگون او لاندی خپو کښی تور داغونه جوړیږی
خو په هغی کښی خبره نشته او نه په هغی د چانه رد ثابت دے بلکه
علماؤ د هغی ذکر بطور مدح فرمائیلے دے (از مترجم)

چنانچه د حضرت ابو میسره باره کښی راځی حضرت عمر بن مره د
حضرت ابو وائل نه روایت کوی.

كَانَ اَبُوْمَيْسَرَةَ مِنْ اَفَاضِلِ اَصْحَابِ عَبْدِاللهِ بن مسعود.

وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سَعْدٍ مَاتَ فِي وِلَايَةِ ابْنِ زِيَادٍ وَقَالَ ابن حبّان فِي الثِّقَاتِ كَانَ مِنَ الْعُبَّادِ وَكَانَتْ رُكْبَتُهُ كَرُكْبَةِ الْعَنْزِ.

الا صابة في معرفة الصحابة ج2/ص375 .

(ترجمه) حضرت ابو مسیره د ابن مسعود رضی ا تعالیٰ عنه په ملګرو کښې بهترین شخص وو او محمد بن سعد فرمائی چه حضرت ابو مسیره دابن زیاد په دور حکومت کښې وفات شویدے او ابن حبان د ثقاتو په ذکر کښې د حضرت ابو مسیره باره کښې فرمائی چه د ده زنګون کښې د چیلی د زنګون پشان تور داغ جوړ وو (یعنی د ډیرو سجدو کولو د وجې نه).